# دکتاب پېژندنه

دکتاب نوم: قلم تـوره
ویناوال: ډاکتر کبیر ستوری
خپرندوی: د پښتونخوا د پوهنې
دېره، پېښور
چاپ نېټه: ۱۹۹۹ع
چاپ شمیر: ۱۰۰۰ ټوکه
کمپوز: ایشیا سافټ، پېښور-
پښتونخوا
چاپځای: ایشیا سافټ، پېښور-
پښتونخوا

دانټرنیټ په مخ

کمپوز : نسیم خان ستوری

ترتیب : ایمل خان ستوری

# ډالۍ

خپل درونند مشر د پښتنو ستر لاربنود خان بابا ( خان عبدالولی خان ) چې د پښتنو د یووالي، ابادۍ او خپلواکۍ د لارې رڼا ده او پتمنې مشرې نیسم بې بې ته ( د قلم توره ) ډالۍ کوم.

کبیر ستوری

# سرلیکونه

| | | |
|---|---|---|
| خیالي نړۍ | د سولې جایزه | ښکلا |
| د خټو کور | خپل کلتور | د عصر توریالی |
| د میو یارانه | ښکلې تماشه | د ژوند سردرې |
| د یار مسکا | د وطن مینه | مین |
| د پښتنو انا | د قلم توره | پېژند |
| د نفاق رنځ | د مینې دود | قضاوت |
| دېره | عشق | د قسمت ویش |
| گلشن | د عشق اور | د منطق اصول |
| فن د مینې | د ځواک چینه | پیدا ایښتی حق |
| ژبه | بدی | د سولې جنډه |
| خیال | هسې خواري | نغاري |
| یو ټبر | د تندي خالونه | د مینی اور |
| د شعر فلسفې | خوب | د پېژند کړ کېچ |
| هډ | غیرت | څه شولو ؟ |
| خوښنه او مننه | | |

# د ډاکټر کبیر ستوري د قلم توره

دفطرت په خوره غېږ کې چې کله وړومبي انسان سترګې وغړولي نو د خپل (ازلي مزاج ) تر مخه یې د کائناتو په هره دره کې د ځان لټون شروع کړو، دغه د خپل ذات لټون د انسان په ژوند کې ناقراري پیدا کړه ځکه نو که د هغه لمن هر څو د جنت د نعمتونو نه ډکه وه ولي بیا هم هغه د "ذات" د تکمیل په ارمان د هغه مېوې د خوراک هڅه وکړه د کومې څخه چې هغه ته څو څو کرته منع کړي شوي ؤ ، د کاٸناتو خالق د غه نافرماني خوښه نه کړه او په ادم ئې د جنت دروازې بندي کړي او دغه رنګ د یو ټاکلي پروګرام مطابق د نړۍ په مخ د انسانیت ابتدا وشوه.

جنت ځای د تولد تناسل نه وو
د غنم دانه بهانه شوه ؤ بابا ته

دغه هر څه د کائناتو د خالق د هغه لوظ پخلې ؤ کوم چې هغه دوړاندې نه د فرشتو سره کړې ؤ.

ستا له مخه چې ادم راغي دنیا ته

د دغه وعدې تکميل سره سم انسان د خوري وري دنيا په سينه د انساني ژوند وړمبي "رده" کېښوده.

د ادم (ع) او هوا بچي د وخت سره سره په لرو بر کې خواره شول او چرته چرته چې ټولګي ټولګي اباد شول نو د خپل مخصوصو روایاتو او د خپل ژوند ژواک دانفرادي حیثیت په اساس په بيلو بيلو قبيلو کې وويشلي شول.
دغه قبيلى چې کله نوري لوي شوي نو قامونه شول او بيا قامونو هم د خپل تاريخ، روایاتو، کلتور، ژبي اونسل په لحاظ خپله پيژند ګلوي پيدا کړه.
دغه واړه قامونو د شمير احاطه کول يقينا چې ډېر ګران کار دې ځکه چې د نړۍ په مخ د اولي ورځي راهيسي د قامونو د جوړښت او بيا د مينځه تلو عمل د مودو راهيسي راروان دې، د تاريخ په پاڼو کې د داسي ډيرو قامونو ذکرشته چې هغوي «نوم» لري ولي «وجود» نه لري. د انساني ژوند د معلوم تاريخ تر مخه چې کومو قامونو د غيرت، توري او ميړاني په اساس ځان ګڼلي دې په هغوي کې د «پښتون» نوم په ډېر درناوي سره اخستل کيږي، د پت ، ښيګړي، توري، وفا او ننګ دغه سمبول د خپل ازلي مزاج مطابق په مينه کې د ريښمنو نه زيات نرم او په نفرت کې د کاڼی نه زيات سخت دې اروانباد حضرت باچا خان د پښتون د دغه ځانګړي مزاج په هکله دا نظر لري چې پښتون په مينه او دلاسه باندي دوزخ ته بوتلل اسان دي، ولی په زور ئې جنت ته هم نه شی بوتلی.

د یو غیرتي نیکه بچو چې کله دنیا ته د غیرت لاري په ګوته کړي نو هر چا ئې د عظمت اعتراف وکړه، تاریخ ګواه دې چې کوم استعماري قوت د پښتون قام « پګړي » ته په کږه سترګه کتلي دي نو بیا ئې داسي ماتي خوړلي ده چې په ورسته کتو ئې « ساه » هم نه ده راکښلي.

آن تر دې چې کله سکندر اعظم د خپل قدرت په نشه کې مست د پښتنو په خاوره قدم کیښود نو ګمان ئې لرلو چې هغه به نړۍ د نورو سیمو په رنګ دا خاوره هم لکه د غوړې نمړۍ د ستوني تېره کړي ولی د هغه نه دا هیر ؤ چې دا د « بابا هوتک او امیر کروړ خاوره ده» ځکه نو دغه نمړۍ ئې په مرۍ کې بده ونښته.
او داسي ونښته چې څو کاله ئې ساه اخستو ته پري نه ښودو، دا هم د پښتنو خاوره وه چرته چې سکندر اعظم د غشي وړمبي او اخري ګوزار وخوړو، دغه غشي د هغه د مرګ سبب وګرځیدو، او چې کله هغه په اخري سلګو کې د پښتون قام د عظمت اعتراف کولو ، نو دا ستعماري قوتونو په زړونو لمبي بلیدي او هغوي داسي سازشونو له پاره سوچونه کول کوم چې د پښتون قام د ملی یووالي د ماتیدو سبب ګرځیدي شول دا هم ددغه ارمان د تکمیل ارمان ؤ چې فرنګي ته ئې د پښتونخوا لار په ګوته کړه د خپل طاقت په نشه کې د فرنګي سترګي پټي وي، د هغه نه دا هیر ؤ چې دلته د غزنوي او ابدالي بچي او د میرویس بابا د پټکئ ولونه ژوند کوي او دوي ټولو ته د عظیم خوشحال بابا دغه وینا وریا ده ده چې:

لا تر اوســـه ئې ماغزه په کرار نه دي
چا چې ما سره وهلي سر په ځنګ دی

فرنګي چې د عظمتونو ددغه لوی غر سره خپل خود سره، سر ووهلو نو په ورمبي ځل ورته د خپلي ناپوهۍ احساس و شو، هغه د خپلی دغه تاریخي ماتي د بدل په خاطر بیا بیا په دغه خاوره یرغل وکړو ولي هر ځل ئې په زړه باندي داسي ژور زخم یوړو چې هر، نوي زخم تري زوړ زخم هیر کړو.
او بیا چې کله د میوند په میدان کې د ملالي یوي ټپي په پښتنه وینه لمبي بلي کړي نو د فرنګي خوله وازه پاتي شوه، هغه دا اعتراف وکړو چې ددي خلکو سره په زور کلي نه شي کیدي ځکه نو د چل ول نه ئې کار اخستل شروع کړل، د پښتون قام ځیني ناپوهه مشرانو ته ئې ددوستۍ لاسونه ورکړل.
د ذاتي ګټو لالچ ددغه مشرانو سترګي ړندي کړي، او چې بیا کله دوي سترګي غړولي نو فرنګي د پښتون قام په هسکه مرۍ باندي په ورمبی ځل د تقسیم چاړه راکښلي وه. د زرګونو کلنو یو وحدت، یو وجود ، په مینځ دري ټوټي کړي شو، داسي ټوټی چې ورکې ئې داجتماعي درد احساس هم قتل کړو، او دادی پنځه دبره سل کاله وشو چې دغه د یو نیکه اولاد، دغه د یو کور اوسیدونکي دغه د یو کلتور او یوي ژبي خاوندان د یو بل نه جدا جدا او پردي پردي پراته دي که هر څو پښتون د یو بل نه پردي پردي شو ولي استعماري قوتونه لا اوس هم د دوي په حقونو لوبي کوي، د تیرو دوویشتو کالو راهیسي چې په افغانستان کې کومه لوبه روانه ده یا دلته په

پاکستان کې د پښتنو په بنیادي حقونو پوري کومي ټوقي کولي شي دا ټول عمل د هغه سازشونو تسلسل دې د کومو ابتدا چې په کال ۱۸۹۳ ع کې شوي وه.
نن د پښتون قام بنیادي مسئله د ملي یووالي او قامي وحدت ګڼل دي او تر څو پوري چې دغه منزل او دغه مرام نه وي تر لاسه شوي د پښتون قام د اجتماعي محرومیانو پریکړه نه شي کیدي ځکه چې کله د سړي وجود نه وي نو هغه د ځان د ګټلو تصور څنګه کولي شي؟
د قامي یووالي د ضرورت ددغه احساس رابیدارولو له پاره ګڼ شمېر قام پرست ننګیالي هلي ځلي کوي چې په دوي کې د ډاکتر کبیر ستوري نوم خپله ځانګړي پیژندګلوي لري.
ښاغلي کبیر ستوری هغه حساس قام پرست پښتون دي چې کله ئې د شعور په درشل قدم ایښي دې نو د پښتون قام د یووالي ارمان له ئې اوږه ورکړیده، او تر اوسه پوري د همدغه ارمان په تکمیل پسي سروهلي بروهلي ګرځي.
که دغه خبره قام پرست مشر ښاغلي محمد افضل خان (خان لالا) کړي ده او که دغه غږ د حضرت باچا خان د پټکي ول خان عبدالولي خان کړیدې، که په همدغه لار د خان شهید خان عبدالصمد خان مبارز ځوي محمود خان اڅکزي قدم ایښودي دې او که دغه اواز د قبائیلي سیمي نوموړي قام پرست مشر ښاغلي لطیف خان افریدي کړي دې نو ښاغلي ډاکتر کبیر ستوری ددغه هر قامي مشرسره خپل غږ ملګري کړي دې دا په دي اساس چې ښاغلي ډاکتر کبیر ستوری د یو فکر او یوي نظر ئې ملګري دې هغه د شخصیت پرستۍ بالکل قایل نه دې ځکه نو ټولو قامي مشرانو ته یو شان احترام لري.

د ډاکتر کبیر ستوری د ژوند زیاته برخه خپلي پښتونخوا نه لري په المان کې تیره شویده، ولي د قامولۍ بیرغ ئې هلته هم هسک ساتلي دې. او د پښتنو د ټولنیرولسولیز ګوند بنیاد ئې په دي غرض ایښي دې چې په بې کوره پښتنو کې د وطن د میني جذبي سړې نه شي، د خپل مرام د پاره د عملي هلو ځلو سره سره ډاکتر کبیر ستوری د شعر په ژبه د ملي یووالي دغه غږ هر چا ته رسول غواړي، دغه شعوري او لا شعوري احساس د ډاکتر کبیر ستوری شاعري نوره هم پښتنه کړي ده.

که غواړي ترقي ستوری د قام د وحدت غم خوره
ټوټې ټوټې چې قام وي خپل ژوند نه شي سمولي

ښاغلي ډاکتر کبیر ستوری یو سپیڅلی قام پرست پښتون دی ځکه د ژوند په هر قدم ورسره د ویشلي او تاوالا پښتون فکر ملګری دې . دغه غم، دغه فکر، دغه سوچ، د هغه په زړه زخمونه جوړوي، د یو ( ټبر ) د عنوان لاندې لیکلي نظم ئې د خپل احساس ځرګندونه کوي.

یــــو ورځـــې چـــا ویـــلـــي
چـــې اســمـان تــه مـې کــتـلـي

یـــوه غـــټـــه وریـــځـــه راغـلـه
دوه وړې ئـــې ښـــکــلــولـــي

وړې شــوې غـــټـې کې غــیــبـي
بـیـا مـې ســترګـو نـه لــیـدلـي

ښکارې دا وي کوچنۍ وريځې
چې د مور غېږې ته تللي

د يو کور د يو ټبر وي
د يو بل نه ځاربېدلې

چې هم جنس وي جمع کېږي
عقل کله بېلولي

په ويشلي پښتون قام ئې
ستوري اوښکې تويولې

پښتون ډاکتر کبير ستورى د خپل شعر په هنداره کې داسې ښکاري لکه چې پښتو نه پرته بل سوچ کول ورته باالکل بې مانا ښکاري.

پښتو ته خداى پيدا کړم پښتونواله مي ژوندون دى
د ژوند په سوکالۍ که مي سر لاړ شي لاړ دې شي

نوموړي مشر د ژوند په هر قدم او هره لار د پښتون کلتور په خاپونو پسې له خپله ځانه ورک ورک ګرځي.

ستورى پښتو پښتونولى د ساز نغمو کې نغاړي
د رباب ټنګ پسې د ټول مالت حجري لټوي

تاريخ ګواه دې چې د کومو قامونو نه خپل کلتور او خپله ژبه هيره شوي وي نو داسې قامونه بيا وختونو هير کړي دي او

داسي ئې هیر کړي دي چې د وجود نښې ئې هم له منځه تللي دي، ډاکتر کبیر ستوری ته دغه احساس شته.

چې خپلې ژبې ته قام پام نه کوی
نو ئې هم دا دورکیدو نښه ده

نو یا دا چې:

د هر قام پیژند په ژبه او کلتور کېږي
په برکت د ژبې قام هسک شی جګېږي

چې په خپله پښتو ژبه نه پوهېږي
ستوری څه پرې که په سل ژبو ګړېږي

او په دې شعر کې هم دغه نظر لري.

عاقبت ئې ورکیده دي ستوری وائې
چې د خپل کلتور او ژبې پردی کیږي

د اروابناد باچاخان د خدائي خد متګارو د تحریک د ټولو نه لویه معجزه دا وه چې دغه ننګیالو د فرنګي ګولو ته سینې سپر کړي وي مګر د آمن او عدم تشدد لمن ئې پرې نه ښوده، د قصه خواني شهیدان د باچا خان د سیاسي بچیانو د تاریخ دد غه خونړۍ پیښې ګواه دي.
ډاکتر کبیر ستوری نن هم د امن لار یون د ژوند مقصد ګڼي.

د باچا خان سیاسي بچي که ډیر ټولي ټولي دي
بیرغ د سولې خو ئې هر ټولی اوچت ساتي

نه صرف په سیاسي لار بلکي په عام ژوند کې هم ډاکتر کبیر ستوری د امن علمبردار دې.

پـه زور کـلـي کـلـه کـیـږي دا مـتـل دې
اخر نـاچـار د سـولـي پـه لار تـلـل دی

د بخت سـتوری ئې تیاره نه وي نو څه وي
چې دچا د ورور عـزیـز سـره فـتـنه شي

څنګه څنګه چې په عالمي سطح د حالاتو بدلون روان دې په دغه تناظر کې د ډاکتر کبیر ستوری دا کلک باور دې چې پښتانه به نور تر ډیر وخته پوري داسي ټوټې ټوټې نه وي.
پراته بلکي دوي به هرومرو د خپل ملي وحدت مرام ته رسي او د احمد شاه بابا دغه خاوره به یو ځل بیا د پښتونخوا په نامه یاده کړي شي.

د وخت دا تقاضا ده ستوری وائي دا به کیږي
نقشه کې د نړۍ به پښتونخوا نوم لیکل کیږي

د کونړ په روڼ سحر کې ځلیدونکي دغه ستوری که یو طرف ته په خپل زړه کې د پښتنو او پښتونولۍ جذبه په غورځنګ لري نوبل طرف ته په خپله پښتنه سینه کې یو داسي پښتون زړه هم لري کوم چې د میني په ژبه پوهیږي او دغه پوهي د ښاغلي کبیر ستوری په شاعرۍ کې ټولي ښکلاګاني ځای کړي دي،

ځکه نو د شعر په لفظونو کې ئې د حسن نزاکتونه او دخاسیتونو باریکیاني(نازکیاني) ول ول شوي دي.

د تـورو زلفو په خیالونو شاعـر مه ګرموئ
تمه د حورو هم د شیخ او ږدو سجدو کې ګوري

او دا شعرونه ئې د پښتني میني ډیر نازک او باریک سرونه چیړي:

ستوری ځکه په پټکي کې دي ټومبلي
چې د یـار د شونډو رنګ وینـي ګلاب کې

چې نوم ئې راته یاد کړي نو زه هم ورسره مل شم
چې ستا صفت خلاص نه وي ځان تري کله بیلوم

د زړه نه زړه ته لار شته په دي هر څوک نه پوهیږي
چـې زه وایم دا ستـا یم ته به هم وائـې زمـا ئــې

د پښتون ستوری عشق هم پښتون دی چې وائي:

تا چې رنګ د پښتونوالي عشق ته ورکړو
پښتـنه مـینه مي لا پـسي توده شـوه

د خپلی خاوري او خپلی علاقي سره مینه لرل د هر انسان په خټه اښکدل شوي دي، که د خپل هېواد نه لري څوک هر څومره د ژوند اسانۍ او سهولتونه ولري خو چې کله هم یواځي کښیني نو دوطن یادونه ئې د زړه تارونه ضرور چیړي که احمد

شاه بابا د ډیلي په رنګینیو کې د خپلي پښتونخوا غرونه یادول نو ډاکتر کبیر ستوری هم په المان کې د خپل پلار نیکه وطن کونړ له یاده نه شي ویستي او په یادونو کې ئې ساده ګي او بي سا ختګي داسي په غور ځنګ ده:

میخانه وتړه راځه دګودر غاړي ته ځو
نشه د میو خو کونړ د سیند اوبو کې شته دی

د ډاکتر کبیر ستوری د سوچ او فکر حدونه یقیناً چې ډیر ژوردي، دوي د قلم په توره د بي حسه اوده پښتون ضمیر بیدارول غواړي او دهغه خوب ریښتیا کولو په غرض د عمل پیغام خپرول غواړي. کوم خوب چې اروابناد (باچا خان لیدلي ؤ) د غه خوب د پښتون قام د ملي یووالي او قامي وحدت خوب ؤ، دغه خوب د پښتون قام د خپلواکۍ او د سیالو سره د سیالۍ تللو خوب ؤ.
دغه خوب د پښتون اولس د ټولو محرومیانو او نیمګړتیاو د مینځه تللو خوب ؤ، د حلاتو بدلون دا زیري راوړي چې د باچا خان دغه خوب او د بي غرضه، بي لالچه قام پرست پښتون ډاکتر کبیر ستوری دا د مودو مودو ارمان به ډیر ژر د امید نه د یقین په درشل قدم کیږدي، انشاءالله. زه دا خپله لیکنه د ښاغلي ډاکتر کبیر ستوری په دي شعرونو راغونډوم!

حرکت کې برکت شته دی دا متل دې
له وده زمري ګیدړ ښه، چې خوځیږي

د منزل په لور ګامونه ګړندي واخله

ای پښتونه قافلې درنه تېرېږي

چې د ځان د بدلولو خيال ئې نه وي
خدای هغه قام بدلوی نه، نه بدلېږي

د وروری او اتفاق لاسونه ورکړی
چې سبا د اسمان ستوری و ځلېږی

# په درناوي

# لايق زاده لايق
# د پښتونخوا د پوهنې د ديرې مشر

## حمد

د لوی خدای په نوم ښوونکی او مهربان دی
په عزت، ذلت، قادر د هر انسان دی

چې څوک وغواړي په يو ساعت کې باچا کړي
چې څوک وغورځی د تخت ځنې روان دی

نه د چا ځنې پيدا نه د چا پلار دی
دی يوازې خو محتاج ورته جهان دی

خدای د هر چا په ښه، بد عمل خبر دی

خو يي واک د ښه او بد عمل د ځان دی

خدای په هر وخت او په هر ځای کې حاضر دی
که دا ځمکه ده که ستوری د اسمان دی[1]

---

۱ ) ددي حمد کره برخه د قرانکريم څخه اخيستل شوي ده، پر تله ( مقايسه ) کړی سورت ال عمران او سورت الاخلاص

## پښتنه مينه

زړه مې د مينې دود پالل غواړي
په وطن سر خپل زارول غواړي

شيخ خو د مينې عبادت جوړ کړ
حوري عقبا کې ښکلول غواړي

پښتانه مينه بې پښتو نه کوي
مينه د ننګ سره تړل غواړي

ستوری د عقل نه پوښتنه وکړه
پښتنه مينه پښتو تل غواړي

## کرامت

چـــا تـــه ژونـــدون دی چـــا تـــه قـیامـــت دی
چـــا تـــه دوزخ دی چـــا تـــــه جـــــنـت دی

خـــوک ویـــښـــوي خـــوک ابـــدی ویـــده کــړی
د ستـوری شـــعـر کـــې دا کـــــرامـــــت دی

## ښادي

د نـــوي ژونـــدون پـیــل دې پـــه خوښۍ شه معطــر
واده دې مـــبارک شـــه کـــوردی ګـــل شـــه سراســر

واده د مـــیـــنـــې او وفـــا تـــــړون دی
پـــکـــې پـــتـــه راز د مـــحـــبـــت پـــروت دی
د انـــســانـــي ژونـــد د بـــقـــا تـــړون دی
پـــکـــې ددې نـــړۍ زیـــنـــت پـــروت دی

دا کور دې د ښـادۍ شي دقـامي پـېژنـد ســنـګر
واده دې مـــبارک شـــه کـــور دی ګـــل شـــه سراســر

دې کـور کـې دې پیدا شي ننګیالي پتمن ځلمیان
چې د پـښـتون سیاسـي تـاریـخ ژونـدي شي
د تـوري د قـلـم او د مـیـړانـې خـاونـدان

چې د قامي وحدت کاروان ګړندی شي

چې شپه د ژوند سبا شي رڼ شي ستوري د سهر
واده دې مبارک شه کور دی ګل شه سراسر

دا شعر ما د پښتو قامي ادبي جرګې پتمن شاعر عزيز سر شار ته ډالۍ کړی دی ټولو هغه پښتنو ځلميانو او پيغلو ته سوغات هم دی چې په پردي مالت کې يو بل سره ودونه کوي او په دې توګه خپله ژبه او کلتور ( کلچر ) ژوندی ساتي.

## د زوړ نوي قانون

د زوړ نوي قانون دلته ښکارېږي نا اشنا
چې نوي ښه له زوړه وي او زوړ کاندي فنا

دا زوړ ښه دی له نوي او که نوي ښه له زوړه
اوس دا پوښتنه هر چېرې ، هر ځای کې ده پيدا

ټولنه باغي شوې ده دودونه دي مات شوي
څه دي او څه به کېږي دا ده غټه معما

رواني قافلې چې دي د ستورو په رڼا کې
ښکارېږي چې جوړېږي زمونږ لو يه پښتونخوا[1]

۱ ) د زوړ نوي قانون منطقې (ډيالکتيکي )اصول دی چې نوی د زوړ ځای نيسی خو پدې شرط چې نوی   د زوړ څخه ښه وي.

## ژوند

د پښتون ژوند په پښتو باندې پتمن دې
بې پښتو چې شي لايقه د کفن دې

چې پښتون وی بې پښتو ژوند کوی نه شی
ستوری وائی پښتو سا او پښتو تن دی

## جنت

چې پښتو دوزخی بولی مخ ئی تور دی
په پښتون باندې حرام د دوزخ اور دی

دوزخی ئی په ويلو جنتی شی
د پښتو ژبې جنت کې کلی کور دی

# د قام مینه

په لفظونو ئی تصویر انځورومه
څو خیالونه ئی د سره زارومه

چې د قام د مینی یاد پکی خوندی کړم
خیال ته رنګ د زړه د وینو ورکومه

چې توان دا تفاق پښتون پیدا کړی
او سیاسی پیژند خپل قام ته وګټمه

صدقه او سپیلنی چې له خپل قام شم
بیا په مرګ مې پروانه شته که ومرمه

چې جنډه د پښتون جګه تر اسمان شی
سلامۍ ته ئی زه ستوري ودرومه

## د اوربل ګلونه

دهــر چــا ده خپلــه خوښه، چې څه وائی هغه دی وائی
یو پوخ د مینی خیال دې چې د یــار کــور تــه مې بیائی

باغونه د ګلــونــو د کــوڅــو نــه دی جــوړ شـــوی
ولاړ دی سلامــی، تــه او د جانـــان لار راتـــه ښـــائـــی

څه ښکلې تماشـــه ده د رنـــګـــونـــو د ګـلـــونـــو
دا زړه پـــکـــې د څـــنـو د اوربـــل ګـلــونــه ستائــی

دا مـــینه ده دنـیـا کـــې ښـــایـســتـونــه جـــوړوی
په څه چې زړه مین وی هغه ښکلې وی زیبــا ئــی

دا مینه به ژوندی، وی عاشقانو کـه مـوړ مـړه یــو
دا ستوری خــو د میـــنـــې د مـــابنــام هـــم د سبـا ئــی

## د زړنو ښکار

د یورپ پیغلو بیا ځان کړلو سینګار
چې د زړونو د مینو وکړی ښکار

خورې زلفې ئی دامونه ندی څه دی؟
چې نظر پکې ونښلی، شی ایسار

چې ئی سترګې پدې پیغلو پر بوتلی
شیخ سجدې ته ښکته نه شولو دوبار

د زاهد، عابد ایمان ته دی خدای خیر کړی
چې ئی پېغلې د یورپ نکړی بې لار

د یورپ پېغلې اثر په ستوری نه کا
چې د عشقه د وطن نه دی وزګار

## بې پوهې پوهان

چې ځان د چا نه ورک شي نو خپل ځان نه پېژني
ګيله تري څه پکار ده چې جهان نه پېژني

بې پوهې ځان پوهان کړی او د ټول جهان باچا شي
د ځان نه جګ باچا او يا پوهان نه پېژني

بې توله کښيني تول د ارزښتونو د جهان کړي
تو پير د شنو باغونو او بيابان نه پېژني

په تول د سړيتوب هيڅ نه پوهيږي ليوني شي
انصاف او عدالت، حق د انسان نه پېژني

درمل ورته د عقل ستوری ورکړه چې په سد شي
سري شوندې توري زلفې د جانان نه پېژني

## د پښتتون فیصله

پښتون فیصله وکړه دې کی بله نه څاپړی
دا خاوره د پښتون به پښتونخوا په نوم یادېږی

دا حق د هر یو قام دی چې پخپله نامه ئی ملک وی
او ژبه ئی د ملک په دفترونو کی چلیږی

ترڅو چې پښتانه او پښتونخوا وی ویشل شوی
نو امن منطقه او په نړۍ کې نه ټینګېږی

دامن له خاطره دا ویش نور نه پاتې کیږی
دا واړه پښتانه به یو مرکز باندې ټولیږی

د وخت دا تقاضا ده ستوری وائی دا به کیږی
نقشه کې د نړۍ به پښتونخوا نوم لیکل کیږی

## د کاڼي کرښې

غمازان ګرځی بید یا نشی د پردې خبرې
کور ته می راشه چې ارام وکړو اوږدې خبرې

قانون د عشق کی د ترخو خبرو نوم نشته دی
ترخی هم ښکاری عاشقانو ته خوږې خبرې

د سپېلنو خیالی انځور به دی له سر کړم لوګی
چې له نظره نه شی ستا درنې پخې خبرې

د کونړ ستوری چې په مینه درته غوږ نیولی
د کاڼی کرښې دی منمه ستا د خولی خبرې

## ودي وائي څه شئ دی؟

لامبو وهی اوبو کې هم په ځمکه ګرځيدی شی
ښایسته وزر لری او په هوا کې الوتې شی

لامبو او الوتل او ګرځیدل ئی ستوری زده دی
ودی وائی څه شئ دی ځواب که راکوې شی

## وروولي

وختونه ځي تېرېږي تاريخونه پاتې کېږي
واکمن خوتل بدلېږي اولسونه پاتې کېږي

واکمن چې واک د پاره اولسونه جنګوي
تاريخ کې د اولس ئې بد نومونه پاتې کېږي

تاداو د سوکالۍ د اولسونو وروړلې ده
د ژوند د پر مختګ دا بنيادونه پاتې کېږي

اې ستوري شاعري دي خدايګو عمر زياتوي
ژوندي دي په شعرونو کې خيالونه پاتې کېږي

## شريک کور

که ادب، سياست، هنر شريک کړي کور
او د پوهې په اوږه ئې کړي خوک سور

خوزولې پرګنې شي ستوري وائي
اتفاق او په وحدت کې پروت دی زور

## د مینې دنیا

د زورزیاتي دښمن دی او د سولې نه ځارېږی
بس دا ئی فلسفه ده او پدی اصول چلېږي

په سوله، سوله غواړی دا خو تل دی ده ویلي
په سوله او خبرو کار د ښه سمېږی

چې سولې ته وطن او منطقه کې خطره وی
د سولې د خاطره هم د جنگ سره جنگېږی

دا ستوری چې ناري د محبت او ورورولۍ کړي
دنیا د مینې غواړی ظلم زور ئې نه خوښېږی

## نیت

نیت دی زیری د بری د هر یو کار
د خدای لمونځ ته هم اول نیت دی پکار

چې دی نیت د پښتونخوا د جوړوو دی
ستوری خدای دی شه ملگری او مددگار

## د خوښۍ یار

د خوښۍ او خوشحالۍ یاران بې شمار وي
یار هغه دی چې په سختـه کې پکار وي

چې په سختـه او تـنـګسه کې دی مل نه وي
ستوري څه پرې چې سکه ورور دی د پلار وي

## د مینې اظهار

څوک لباسي تېښ پاس کوي مخلص کېدلی نه شي
څوک د لباس تومنه اخلاص کې ګډولی نه شي

څوک د اوبو په شان د هر یو لوښي بڼه نیسي
څوک لکه تیږه خپله بڼه بدلولی نه شي

څوک حرکت کوي روان وي د منزل په لوري
څوک هسې لاس د زنې ناست وي خوځېدلی نه شي

څوک د لیلا مینه کې دار ته ځي په دار ورخېژي
څوک تش په خوله اظهار د مینې هم کولی نه شي

څوک به څه وي، څه به کوي دا به همدلته پرېږدو
ستوري پښتون دی له پښتو نه تېرېدلی نه شي

## د قلم او ښکلي

د انسان فکر او خیال که هر څو دنګ دی
ستا د حسن د تصویر د پاره تنګ دی

ستا ښکلا د خیال ورشو کې نه ځا پېږي
سوز د مینې کې دی پروت خمار د بنګ دی

ستا د مینې په مستۍ کې مې زړه ځوان شو
زما وینه کې دا ستا د شونډو رنګ دی

د ناصح نصیحتونه مې زړه نه اوري
لګېدلی چې پرې ستا د پاولو شرنګ دی

د قلم او ښکلي جرګه به درلېږمه
د جرګې مخ او خاطر د پښتو ننګ دی

د کمځونه جوړ پاتان[1] که ! چې در خېژم
د اسمان د ستورو کټ چې دی پالنګ دی

---

[1] ) زینه، اندرپی ، پوړۍ

## د ادب شمله

نفاق او تربګني به پخپل منځ کې ورکوو
که لوړې جګې څوکې ته د ژوند ځان رسوو

قامونه په ادب او په پوهنې پر مخ تللي
ډیوه به د پوهنې ځان او قام ته بلوو

جامې د موسیقي چې ادب وا غوندي ژوندی شي
ادب به ټینګ ټکور او له پښتو، نه بېلوو

لندۍ او شعر دواړه دادب د خیال شمله ده
شمله به د ادب د ساز نغمو کې جګوو

ادب په زړه کې وا چوی احساس د قامولۍ
ناره به د پښتو پښتونولۍ پورته کوو

چې رون د پښتو ستوری شي په لویه پښتونخوا کې
اختیار د خپلې خاورې او وطن به خپلوو

## کم عقل

ما چې وکتل دې ګرد چاپېر جهان ته
هېڅوک نه وائی کم عقل خپله ځان ته

کم عقلانو ته هوښیار کم عقل ښکاری
خدای دې ورنه کړی کم عقل دوست انسان ته

افلاطون او سقراط به درنه هېر شي
که ئې غور شي صرف یوه شېبه بیان ته

تو پیرورک دی د طبیب او لیوني
لیونیان، لېوني وائی ساپوهان ته

هر سړي ته ځان د بل نه هوښیار ښکاري
ځکه ستوری تړي نه و خاته اسمان ته

## برخه لیک

خپلواکې د خپلو وینو په بیه اخلم
ژوند مانا پیدا کوي چې ازادي وي

د ازل د برخه لیک نه به باغي شم
که زما ستوري په برخه غلامي وي

## د امید ځانګه

جاله که جوړه دیدن زر د سیند څپو کې راوړه
د کشمالو خوشبوي د ځنو په وږمو کې راوړه

د امید ځانګې غوټۍ کړې نن سبا به ګل شي
لړې اوبه ورته ګودر نه په منګو کې راوړه

په سترګو نه وینم به غوږ ئې اورېدلی شمه
په لیک کې مه راوړه پیغام د ساز نغمو کې راوړه

که ستوری وویني زما ورته ځواب ووایه
د نوي ژوند مستي د بنګو په پیالو کې راوړه

## غل او مل

چې د غل سره مل کورنه پکې نه وي
نو مشکله غلا کول د کوروډان شي

ستوری لا ستی که د ونې پکې نه وي
نو د ونې غوځول تبرته ګران شي

## د مینې ویاړ

ویاړ به دې د مینې خامخا ځان ته ګټم
که سر وربانده دې درکم باقې نور به څومره شم

چې نوم دې راته یاد کړي څوک نو زه ورسره مل شم
چې ستا صفت خلاص نه وي ځان ترې کله بېلوم

چې چېرې په کوم ځای کې ننداره ستا د ښکلا وي
په ځمکه که هوا وي ځان دستي وروسوم

جذبه ده دا د مینې که د عقل دلیلونه
له خپله سره تېر شوم ستا له سر، سر ځاروم

رنګونو د ګلونو کې دې رنګ د شونډو ګورم
د ستوري په قلم لفظي انځور دې جوړوم

## خپل کلتور

هره ځانګه خپله ونه کې لوئیږي
چې له ونې ځانګه غوځه شي وچیږي

عاقبت ئې ورکېده دي ستوري وائي
چې د خپل کلتور او ژبې پردې کیږي

## یاد

چې د عشق په میو مست مې کړ غزل
یاد دي ښکلی شو د څڼو د اوربل

حاجت نلرې چې څڼو کې ئې کېږدې
چې له ګل ځني ښایسته ئې یو په سل

چې خبر دي له ښاست اوله ښکلا شو
رنګ بدل شو د سندرو د بلبل

ستوری وائي زړه کې نوی مینه زور شوه
ګل ئي پرېښود ستا په لورې الوتل

## د ښایست مور

مینه مور ده د ښایست که څوک پوهېږي
ښایستونه خو له مینې پیدا کېږي

که دا مینه نه وی، ودې وائی څه دې؟
چې بدرنګ ځوی ښایسته پلار ته ښکارېږی

کشکی زه خو په تا نه وی مین شوی
ستا له غمه مې اوس زړه په ځان خوږېږی

دا ده مینه چې ستا رنګ ئی ښایسته کړ
د هسک ستوري سلامې درته ودرېږی

## خوئ او رنګ

د چا دې سترګې د چا شونډې د چا خال خوښېږي
د چا دي خوئ او خاصيتونه زړه پتوال خوښېږي

د چا نظر دې د اوربل د خوانه، نه خوځېږي
د چا دی زلفو کې ځنګا د زلفو تال خوښېږي

څوک دی د رنګ څوک دی د خوئ په صفتونو بوخت دي
څوک وايي دواړه مې انډول برابر سيال خوښېږي

د خوئ او رنګ ښايست چې دواړه دي جوړه شي روان
دا خو د ستوري په هر ځای کې هر مهال خوښېږي

## د عصر توریالۍ

که ملاله په تاریخ کې ننګیالۍ ده
نو نسیم ولې د عصر توریالۍ ده

قرارداد د پښتونخوا ئی په زیار پاس شو
د بخت ستوری د پښتون د سوکالۍ ده

# پوهه او سوچ

خپلې پوهې برابر سوچ دانسان وي
د لوړ سوچ د خاوندانو لوړ ارمان وي

ناپوهۍ نه غټ دښمن د انسان نشته
ناپوهانو ته جهان پېژندل ګران وي

تل د ځان په هنداره کې جهان ګوري
د خپل سوچ په اندازه ئې تنګ جهان وي

ځان جهان په ائینه کې پوهان ويني
رسولي ځان تر ستورو د اسمان وي

## د خوشحال خان توره

په خوښه نشي له غاصب حق اخستل دي پکار
د حق لپاره سر له حقه ځارول دي پکار

چې ظلم ورک شي او ګلان د انصاف وغوړېږي
په اور د ظلم کې ظالم خپله سېزل دي پکار

کمزوري نه يو امتحان مو څو څو ځل ورکړي
د خوشحال خان توره له تيکي راويستل دي پکار

چې زوړ مو ځوان شي او ځواني مو په مستۍ راشي
په يو مرکز باندې د ټولو ټولېدل دي پکار

خوب د مرګ وروردی لاتر څو به مونږ اوده پاتې يو
که ژوند ون غواړو نو د خوبه پاڅېدل دي پکار

د سبا ستوری راختلی دی پښتون ته وايي
د خوبه پاڅه د منزل په لوري تلل دي پکار

## د غزلو اختر

تا چې د مینې د وطن نه غزلونه جوړ کړل
د فن شاهکارو ترې د غاړې امیلونه جوړکړل

رنګ رنګ غزلې ئې د زلفو تار کې و پییلې
د ساز نغمو کې له غزلو داستانونه جوړ کړل

د رباعي، غزل، داستان حد بندي ماته کړله
د هنر غبرګ کې نوي نوي خوزښتونه جوړ کړل

چې د داستان جامې د ستوري غزل واغوستلې
د ژوند چمن کې د غزلو اخترونه جوړکړل

## د ستړګو خطا

کـه پـه جـاز کـې څـوک اسمـان ته پـورتـه کېږي
دا د زمـکـې خـلـک کـوچـني ورتـه ښکـارېـږي

دا خـــطـا د ســـترګـــو ده، د عـــقــل نـــه ده
عـقـل وايـي غـټ انسـان، نـه، کـوچـنی کـېږي

جـګـېـدو کـې احـتـمـال د ټـيـټـېـد و شـتـه
پـوه بـه هـلـه شـي چـې جـاز کـنـدې تـه لـوېـږي

جـګـېـدو کـې چـې ځـان ورک نـه کـړي جانـانـه
کـــه دي ســـر دا ســـمان ســـتورو تـــه رســـېږي

## وحدت

دا دنیا خو یو څو ورځو ته پیدا ده
ابدي ژوند ته تاکلې خدای عقبا ده

د دنیا په سر د ژوند پوله ده تنګه
پیدا شوي ترې ابد ژوند تمنا ده

د مادې او د مانا وحدت ژوندون دې
ماده تن دی د انسان او مانا سا ده

سا چې ووزي له تنه وحدت ورک شي
ستوری پرېوزي د ژوند د مرګ بینا ده

## د شونډو رنګ

چې لاهو شي څوک د مينې په درياب کې
تو پير ورک شي په راحت او په عذاب کې

هر عذاب د يار خدمت کې راحت ښکاري
عذاب نشته دی د مينې په کتاب کې

د رخانی چې ورته بام سر ته ختله
سوز د مينې شته تارونو د رباب کې

ستوري څکه په پټه کې دي ټومبلي
چې د يار د شونډو رنګ وينې ګلاب کې

## بې جانان مين

چې څوک مئ د مينې وڅکي مست خمار شي
د بلبل سره شي مل عشق ئې روزګار شي

چې جانان ئی غېږ کې پروت وی بې پروا وي
بې جانان مين عابد او پرهېزګار شي

په مستۍ او په خوښۍ کې له ياد وځي
خدای هله د سړي ياد شي چې ناچار شي

د جانان په تمه پروت شيخ په سجده دی
ستوری وائي پاک الله دې مددګار شي

## جبر او اختیار

دا دي جبر که انسان ته شته اختیار
چې لیکلي په ازل کې خدای هر کار

که دا جبر وي بیا حق د سزا نه شته
څوک په څه شي ملامت او ګنهګار

که اختیار وي بیا سزا د ګناه حق ده
چې حساب وشي د هر عمل کردار

ما پوښتنه پدې باب له استاذ وکړه
منطقي ځواب ئې راکړ سم دوار

خدای اختیار ستوری انسان ته دي ورکړي
خو ئې مخکې له هر کار دي خبردار

## د اسمان کاڼي

د مینې د وطن نه مې زړه ځان نه بیلوي

لګیا دي خپل ټوټې ټوټې وطن راټولوي

ټوټې چې یو ځای نه کړي هومره نه کیني ارام
د سراو مال په بیه دا ټوټې کوشیروي

چې مینه د وطن کې مې زړه وریت شو پوخ سرتېر شو
روان دي سربازۍ ته ځان وطن نه ځاروي

په مینه د وطن کې ستوری وخاته اسمان ته
وګوره په غلیم له اسمان کاڼي وره وي

## حرکت

هوښیاران چې د ژوندون په راز پوهېږي
حرکت کوي روان وي نه ودرېږي

حـــرکـــت کـــې بـــرکـــت شـــتـه دی دا مـتــل دې
لـــه وده زمـــري ګـــيـدړ ښـــه، چـــې خـوځـــېږي

د مـــنـــزل پـــه لـــور ګـامـــونـــه ګـړنـدي واخـلـه
ای پـــښـتـونـــه قـــافـــلـــې درنـه تـــېرېـــږی

چـې د ځـــان د بـــدلـولـــو خـــيـال ئـــې نـه وي
خـــدای هـــغـه قـــام بـدلـــوی نـه، نـه بـدلـېږي

د وروری او تـــــفـــاق لا ســـــونـــه ورکـــــړی
چــــې ســـبـا د اســـمـان ســـتـوری و ځـــلـېږی

۱ ) ددې شعر څلورم بيت د قرانکريم د ۱۳ سيپارې د سوره الرعد ، د (۱۱ ) ايت شريف مانا ده.

## سوچ د ژبی بنه ده

چـــا ويـــل تـــش د پـــوهـــېـدو نـــښـه ده؟
ژبـــه د قـــام د پـــېـژنـــدو نـــښـه ده

ســـــوچ هـــم د ژبـــی یـــوه بـــنـهـه ښـــکـــاری
ژبـــــه د ســــــوچ د لـــــوئـــــیـــدونــــښــــه ده

چـــې خـــپـلـــې ژبـــی تـــه قـــام پـــام نـــه کـــوی
نـــــو ئـــــی هـــــمـــدا د ورکــــــېـــدو نــــښـــه ده

بـــې ژبـــــې قـــــام وده کــــولــــی نـــــه شــــــی
ژبـــه د قـــــام د پــــرمــــخـــتـــلـــو نــــښـــه ده

ســــتوری پــــښــــتـــو بـــانـــدې پښـــتـــو پـه کار ده
پـــه ژبـــــه نـــــنـــګ د نــــنـــګـيـالـــو نـښـــه ده

## د اشتهار اصول

چـې مـیـنـه د چـا زړه کـې وي نـو مـیـنـه بـه پـالـي
مـیـن ددې حــقـدار دې ، مـــیـن ددې حـــقــدار دې

چـې سـر خـــوک د خـپـل قـام او دوطـن نـه ځاروي
نصیـب ئې افـتـخـار دې، نـصـیـب ئې افـتـخـار دې

منمه چې هر چا ته لیلا خپله ښایسته ښکاري
صفت ئې هم پکار دې، صفت ئې هم پکار دې

پردۍ ته به بد نه وایي او خپله به ستائي
اصول د اشتهار دې، اصول د اشتهار دې

کبیر ستوری لیکنه کې تل دا اصول ساتي
اصول ته وفا دار دې ، اصول ته وفا دار دې

## ذهني اوښتون

یو سوچ و ، اوده شوی چېرته جبل په اتکړو کې
راپاڅېدو د خوبه په سندرو او نغمو کې

مسکی شو راته وي ویل چې رښتیا سوچ ازاد شوی
که غېږ د ازادۍ دی په شرنګار د زلونو کې

ازاد یم پیدا شوی ازادۍ باندې مین یم

ازاد مې طبيعت[1] دې خوشال نه يم پابندو کې

ما غوږ کې ورته وويل ازادي د هر چا حق دې
خو دې ته هم پکار دي اوښتون غلام ذهنو کې

غلام ذهن خو نور د غلامۍ خلاصيد ل غواړي
د ذهن اوښتون دې پيدا شوی اولسو کې

ازاد سوچ به ازاد وي پابندي به وي پابنده
کبير ستوري راوړی تا ته زيری په شعرو کې

۱) خوی

## زړونو ته لارې

په زړه کې راسره ئې که له مخې مې پنا ئې
د خيال په سردرو کې راته خاندې په مسکايې

چې ته ئې کړې پيدا ، زه خدای په تا باندې مين کړم
دا زه خو يم د ستا که ته زما نه ئې د چا ئې

د زړه نه زړه ته لار شته په دې هر څوک خو پوهېږي
چې زه وايم د ستا يم ته به هم وائې زما ئې

چې ستوري د اسمان ټول په تعظيم درته ولاړ دي
قسم دی ملکه ته درنګونو د ښکلا ئې

## وار

د پلار نيکه وار تېر شو، وار زمونږه د پښتو دی
ورکېږو که يو نه شو، ضرورت د يو کېدو دی

دوخت سره به ځو يا به وخت ځانه سره بيايو
دوخت سره که ځونو زياتې وخت د خوځېدو دی

که وخت ځان سره بيايو نو د ننګ توره راواخلې
چې وخت ځان سره بيائې دا خو کار د ننګيالو دی

میراث د ننګ غیرت چې د نیکونو دی راپاتې
دا وخت ځان سره بیایو وخت د بدلېدو دی

چې ستوری د سبا د خپلواک ژوند دی راختلی
د خپل ملک جوړېدو ته وخت راغلی د جرګو دی

## د باچا خان لار

فکرونه مې ګلونه شول په قام به ئې شیندم
خیالونه مې سازونه شول نغمې د ژوند ، وهم

خوږه قامي نغمه مې شروع کړېده د سولې
له زور، زور پیدا کېږي په زور کلي نه کوم

د زړه د مینې جوش دی که دعقل دلیلونه
چې زور نه مې نفرت دی سر له سولې ځاروم

سور پوښ یم ستوری وایي سرې جامې مې دي اغوستې
په لار د باچا خان به قدم مخکې به ځم

## قناعت

يوه هيله چې سر شي بله هيله شي پيدا
دې هيلو د انسان ته حد ټاکلی نه دی چا

دا هيلې نه خلاصېږي نا پايانه سلسله ده
يوازې قناعت دی د دې هيلو انتها

قانع چې انسان نه شي همېشه به سرګردان وي
ګالي به کړاوونه منډې تررې هرې خوا

دا ستوری خو قانع دې نور څه نه غواړي له خدايه
صرف يو موټی اباده او ازاده پښتونخوا

## نوی ملالۍ

ځان دې سپېلنی که ! زار د خپلې پښتونخوا نه شه
ای پښتنې پېغلې د پښتو د باغ باغوانه شه

دا پښتنه خاوره د وخت نوې ملالۍ غواړي
جوړ کړه يو لښکر د پېغلو مخکې ئې روانه شه

وخت نه ايساربږی قافلې د ژوند روانې دې
درومه د منزل په لور ډيوه بله روښانه شه

ستوری به کيسې ستا د مېړانې او غيرت کوي
پورته که جنډه د پښتون جګه تر اسمانه شه

## ادب

ادب ځان پرست نه دی چې تش خپل خدمت کوي
تولنې د خدمت نه ادب ځان نه بېلوي

ادب، ادب د پاره هسې تور دی پرې لګېږي
د عقل او منطق اصول د تور مخ توروي

قانون کې د منطق نه شته دی دا کله کېدای شي
هدف او وسیله چې د ادب نه جوړوي

ادب خو وسیله ده په خدمت کې د هدف
هدف ته د ورتلو لاره د عقل رڼوي[1]

ادب چې وسیله د پښتنو د ابادۍ شي
دا ستوري له اسمانه پرې ګلونه وروي

(۱) رڼا کوي

## سباوون

مور پښتانه یو ، پښتو ژبه او قانون دی زمونږ
په پښتو چارې سمو و پښتو ژوندون دی زمونږ

پېژند ګلوي د هر یو قام په ژبه او دود کېږي
چې پښتو وایي ، او پښتو کوي پښتون دی زمونږ

په تش نسب بې له پښتو ، پښتون کېدای کله شي
پښتانه تل وایي پښتو سره ترون دی زمونږ

پښتونولي د ژوند بنسټ دي ستوری وایي په جار
د ژوند تیارو کې پښتونواله سباوون دی زمونږ

## د وطن ډاګونه

دا مـیـنه تـش سـتـا نه ده، ټـول جـهان پـه مینه پایي
زما هـم زړه مـیـن دی ، چـې د عـشق سـنـدرې وایـي

د ژونـد د ګـړنګونو او تـکـلـیـفـونـو بـې پـروایـم
دا مینه ده چې سم مـې سربـازۍ مـیدان تـه بیایـي

پـښـتـون یـمـه ملـګـرو زمـا مـیـنه پـښـتـنه ده
خیـالـونـه بـه مـې تـل د خـپـل وطن ډاګـونه ستایي

څو به د قـامولـۍ چې پښـتـونـخـوا کې پـاریـدلې
نو تا ته کـېـنا ستل ستـوري په کور کې کـلـه ښا یـي

## خندا او ژړا

ما پــتــه لـګــولـې ، ژړا مـــشـره لـــه خـنـدا ده [1]
دا مـشـره د رقـيـــب ده، خــو دا کـشـره يـې زمـا ده

ژړا نـــه مـې زړه تـور دی مـبـارک دې شـي رقـيـب تـه
ژوند ښه دی په خندا کې چې خوښي او خوشحالتيا ده

ماشوم چې چيرې وشي لومړی ژاړي وروسته خاندي
ژړا ښـــکاري نـسـلـي خو خـنـدا زده کـړه له د نـيا ده

خند ېـړه راتـه خانده چې د ژوند سـتوری روښان شي
خندا چې پـکـې نـه وي د ژونـدون خـونـه تـا لا ده

---

۱ ) دا پته ما ته د ودې د ساپوهنې سربېره زما د لمسي پوهيال ستوری د پوهنېزې څارنې په لړ کې لګېدلې ده. پوهيال ستوری په ۱۹۹۸/ ۳/ ۱۱نېټه زېږيدلی تر دري مياشتو پورې ئې

وچه ژړا کوله چې اوښکې ورسره بدرګه نه وي، ورسته د درې میاشتو د ژړا سره اوښکې بدرګه شوې او په همدې وخت کې په مسکا چې د خندا لمړنۍ بڼه ده پیل وکړه، ددې څارنې په ترڅ کې دا خبره تائید شوه چې ژړا نه یوازې د خندا نه مشره ده بلکه په ډېره اندازه سره پیدا ایښتي ( یا نسلي ) او خندا د زده کړې په بنسټ منځ ته راځي

## خپل دود

پښتانه هر چیرې خپل دود ، عزت او پت ساتې
د سر په بیه د خپل قام وطن عظمت ساتې

د باچا خان سیاسي بچي که ډېر ټولي ټولي دي
بیرغ د سولې خو یې هر ټولې او چت ساتې

ګډه یې ژبه ګډه تاریخ دی بیلیدی کله شي
پښتونولې ئې د اولس ملي وحدت ساتې

خیر دی که ډلې بېلې بېلې نظریه یو ده
ټول قام پرست خو د پښتو شان او شوکت ساتې

رقیبه چېرته به پټېږې پښتونخوا جوړېږې
ستوری د شپې تورو تیارو کې رڼ مالت ساتې

# ښکلا پرست

څومره مزه چې ساقي ستا په شونډو سرو کې شته دی
دومره مزه کله د میو په پیالو کی شته دی

ښکلا پرست یم ساقي تش دا ستا لیدو ته درځم
د ښکلا زور دی د مسکا مستو شیبو کې شته دی

ما ته د شونډو شربت راکه پیمانې نه غواړم
عشق کې ثواب د مینې تندی ماتو کې شته دی

میخانه وته راځه د ګودر غاړې ته څو
نشه د میو خو کونړ د سیند اوبو کې شته دی

هلته حجري د پښتنو په تنګ تکور تودی دی
دقام د مینې جوش د ستوري ترانو کې شته دی

## د ژوندون څراغ

زه پښتون زلمی یم پښتنې مور نه پیدا یمه
مینه کې د ښکلو زه مین په پښتونخوا یمه

ما پښتو کول د پښتنې مور نه زده کړي دي
پت یمه، ښېګړه یمه، توره او وفا یمه

مینه پښتنه مې په ځوانۍ باندې راغلې ده
ځکه د قام مینه کې تکلیف نه بې پروا یمه

ما تورو تیارو کې د ژوندون څراغ بل کړی دي
او سمه په غرونو کې د غرو د سر رڼا یمه

قام ته مې د سولې ازادۍ پیغام راوړی دي
زیری د ژوندون یم رڼا ستوری د سبا یمه

## سر ټیټی مشر

د هغه مشر سر ټیټ دی نه جګېږي
چې د خپل اولس په ژبه نه پوهېږي

چې د خپل کلتور او ژبې نه پردی وي
داسې مشر د قام کله پکارېږي

د سر ټیټ مشر پسې مه ځه پښتونه
د هغه سر چې ټیټېږي ستا ټيټېږي

ستا شمله د اسمان ستورو ته رسېږي
ټیټ سر کله دې شملې سره جوړېږي

# د مېنې افتخار

رښتیا چې ملکه ئی د رنګونو د ښکلا
ښکلا ته دې سجده کړی ښکلاګانې د دنیا

ښایست دی د مینو د زړه مینه تودوی
د سرو ګلونو څانګې ته په برخه ئی د چا

د سر په بیه اخلم ستا د مینې افتخار
باقي به خومره نور شم راته ووایه صفا

دا ستوري کړي پوښتنه درنه غواړي اجازه
دا ته د ګل په رنګ ئی؟ که ګل رنګ اخستی ستا

## قوت

چې څاڅکي څاڅکي يو ځای شي غټ سيند شي جوړولی
يووالي کې ډېر والی د قوت دی ما ليدلی

يو کڼکی خو کمزوری وي په لږ څه زور ماتېږي
ګېډۍ د کڼکو څوک اسانه نه شي ماتولی

وحدت چې د موټر پرزو کې وي نو حرکت کړي
موټر پرزې پرزې که بيا خونه شي خوزېدلی

که غواړې ترقي ستوری د قام د وحدت غم خوره
ټوټې ټوټې چې قام وي خپل ژوند نه شي سمولی

## د سوچ ازادي

په سوله او ورورولۍ کـه مې سر لاړ شي لاړ دي شي
د سـوچ پـه ازادۍ کـه مــې سـر لاړ شـي لاړ دي شـي

ازاد يـم پـيـدا شـوی ازدۍ بـانـدې مـې نـنـګ دی
د قـام پـه خپلواکۍ که مې سر لاړ شي لاړ شي دي شي

پښتو ته خدای پیدا کړم پښـتـونـواله مې ژوندون دي
د ژونـد پـه سوکالـۍ کـه مې سر لاړ شي لاړ دي شي

د زړه د مـيـنې جوش دي ځکه ستوري په جـار وائـي
پـه قـام او قـامولـۍ کـه مې سـر لاړ شـي دي شـي

## د قام ننګ

مطرب يمه د سولې مست د خپل رباب په شرنګ يم
سوله مې نارا ده او د جنګ سره په جنګ يم

زه د باچا خان د سور پوښانو دود ساتلی شم
لاره مې پښتو ده د پښتو د لار پتنګ يم

زه قلم نه توره جوړوم، توره ترې غواړمه
توره د قلم په لاس ولاړ د قام په ننګ يم

زه جنډه د سولې په اسمان کې رپول غواړم
ستوری د ژوندون يم او د سولې په رنګ رنګ يم

## جګې شملې

پښتون کړم خدای پیدا او په پښتو باندې مین شوم
د ښکلې پښتونخوا پــه سردرو بانـدې مین شوم

پېژنـد چې مــې د قام پـکې ځلېږي پــه نـړۍ کــې
د ننګ جګو شملو قـامــې جامـو بانـدې مین شوم

کــوي چــې پښتانه پـکــې د خپل مېلـمه پـالــنه
د قـام اولـس دیــرو او پــه حجـرو بـانـدې مـیـن شوم

پــښــتــو بــه تــل کــوم او پښـتـونـوالـه بــه ســاتــم
ســتــوری د پــښـتــو یــم پــه جرګو بـانـدې مــیـن شوم

## د ژوند بازار

د ژوند ون بازار چلېږي په عرضه او تقاضا
ارزښت کم د هغه څه وي چې د څه نه وي اړتيا

ضرورت دا يجاد مورده ضرورت چې شي پيدا
سړی ګرځي لټوي ئې په هر لوري په هر خوا

چې توتې توتې وجود وي پکې نه او سېږي سا
سا به هله پکې اوسي چې پيوند شي توتې بيا

د قامي وحدت د لارې به لټون کړي خامخا
ستوری ژوند که د پت غواړي او د قام خپل پرمختيا

## خیالي نړۍ

د انسان د دماغ کله دا خطا ده
دا خیالي نړۍ خو هم رښتیا پیدا ده

د یوه موجود اړخونه متضاد دي
حقیقي نړۍ مادي، خیالي مانا ده

حقیقي نړۍ کې قید او پاپندي شته
دا خیالي نړۍ د قیده بې پروا ده

ازادۍ که پابندي وه ستوری وائي
ما ستا یلې خپله ښکلې پښتونخوا ده

## د سولې جایزه

ښادي چې د قامي وحدت مې خیال کې ځنګېد له
نغمه د نوي ژوند د پښتونوالې غړېدله

غوټۍ وي په باغونو کې د ګلو غوړېدلې
بلبلو ترانه قامي په خوند ورته ویله

نفاق وه کډه کړې ورورولي وه پښتون قام کې
جنت کې خوشحالي د باچاخان ارواکوله

لیکوال، هنرمندان او شاعران وو جرګه شوي
د سولې جایزه د ستوري شعر ترې وګټله

# ښکلا

یو زوړ د مینې سوچ دي خاطره ده د ګلونو
که نوي ننداره ده د ګلونو درنګونو

اظهار مې دي د مینې خاطره که ننداره ده
په دواړو کې ښکلا ده صرف توپیر دي د وختونو

د وخت سره به ځمه یا به وخت ځان سره بیا یم
مرام ته نه رسېږي ځوک په کټ کې په خوبونو

سوچونه پښتني ستوري عمل جامو کې نغاړه
عمل چې پکې نه وي هسې نه شي په سوچونو

## د ختهو کور

زه په حجرو کې یم لوي شي تنګ تکور خوښوم
د فن په غیږ کې د ادب او سیاست شور خوښوم

وروري منم غلامي نه منم په جاروایمه
د وروروولۍ جذبه په زړه کې لور په لور خوښوم

د بل په متهو که لوئیږم هډو لوئ دي نه شم
پښتون ځلمي یم زه د خپلو متهو زور خوښوم

قام په سیاسي ، ثقافتي پیژند سینګار غوارمه
زړه او دماغ کې د پښتو د مینې اور خوښوم

د پردیسۍ د ژوند ماڼۍ کې ګلان کله کرم
زه کبیر ستوری د وطن د ختهو کور خوښوم

## د میو یارانه

ساقي راځه زمونږ په چم کې میخانه جوړه کړه
یوه چنه پکې د مینې مستانه جوړه کړه

چنه د مینې په نغمو او ټنګ ټکور ګرمه کړه
د ځان مین ته د درتلو بهانه جوړه کړه

شیخ ته هم نغده اوس رسیږي نسیا نه غواړي نور
پته ئې کلي کې د میو یارانه جوړه کړه

که میخانې ته چیرې راغی خیر دی مه ئې شړه
غټه پیاله ورته د میو جانانه جوړه کړه

ستوری ځواني په نشه مست دی تش ګپ شپ ته درځي
ورته د سرو شونډو شربت نه پیمانه جوړه کړه

## ښکلی تماشه

د خيـالـه جـوړه شـوي نـغـاره فـكـرو هـلـه
څـه ښـكلـي تـماشـا وه تـماشـا ئـى مـا كولـه

بـلبلـي د بـاغـونـو نـه ګـډا تـه وى راغـلـى
سـاقـى د بـنګ پـيالـه لاس كې هـر چـا تـه وركـولـه

راجـمـع و رنـګـونـه د ښـكلا مـسابـقـه وه
ښـكلا د قـامـولـۍ د ښـايـست مـيره[1] وختله

د سـتـورو مـشالـونـه لـګـيدلـى و اسـمـان كې
رڼـا د پـښـتـونـوالـې ئـى هـر خـوا تـه خـورولـه

---

میره: مشره

## د ژوند سردرې

كـه ګـلان وكـرى د ژونـد د سـردرو پـه څـوكـو

زه بــه ئــی سیل لـــره درځم د جګـو غـرو پـه څوکـو

چې طبیعی [1] بنایست دی وران نشی سینګار مه کوه
پـیـوی دی خـیـر دی چې ځنګـیړی د کمڅو په څوکو

کـه چا خـبـر دی د راتـلـو زمـونـږ مـالــت تـه راوړ
لار بـــه جـــارو کـــړم ستا د پـاره د بڼـو پـه څـوکـو

چـــې دی نـظـر د تـورو سـتـرګـو د نـظـره نـــه شــی
د نظر مـاتـی اور بـه بـل کـړم سپیلنو پـه څـوکــو

مـیـنـه د زړه خـبـره ده، د زور قـانـــون نـــه مـــنـی
ستوری ګواه[2] دی مینه نه شی د برچو[3] په څوکو

۱ ) قدرتی ، ساده ۲ ) شاهد ۳ ) نیزو

## د یار مسکا

طبیـبـه څـه پـــازه [1] دې کـلـه پـه دوا کـې شـتـه دې
رنـځـور د مـینې ته درمل د یار مسکا کـې شـتـه دې

ښکلا بنیاد د مینتوب ده ښکلي مینه غواړم
د مینې کور کلی د ښکلو په ښکلا کې شته دې

ښکلا پرست خلـه یورپ او امریکا لټوي
د ښکلا زور خو دنګو غرو د پښتونخوا کې شته دې

د سیند اوبو کې ئې نشه د ازادۍ پرته ده
د ننګ وړانګې ئې د ستورو په رڼا کې شته دې

۱) اغېزه ، تاثیر ، اثر

## د وطن مینه

په هغه مین پکار دی افتخار
چې په مینه د وطن کړی خپل سر زار

د بخت ستوری ئې ځلیږي په اسمان کې
چې څوک ولري د خپل وطن اختیار

## مین

خـــدای دې تـا کـانـــدی مـیــن چــې مـاتـه نه وی
ددی ښـکـلـــو د یــاری نــه لاس پــــه ســره شــــه

چـــې د شـپـــې ســتـوری راخـــېـژی راتـــه وائـــی
کـــه مـیــن ئـــی نـــو د یــار غـــېــرې تـــه ورشـــه

## د پښتنو انا

پـریـکـــړه پـاس د پښـتـونـخوا شـوه خوشحالي شوه
د قـــامـــونـــو ســره جـوړه مـو سـیـالـــي شــوه

زرغـــونـــې انـــا تـــکـری خـپـل ورپـه سـر کـــړ
چـــې انـــا د پـښـتـنـو نـــسـیـــم ولـــي شـــــوه

د مـیـرویـس نـیـکـه پـتـکـی د افـضـل خـان شـو
چې ئـې غـږ د پـښـتـونـخوا رښـتـیـنـولـي شـوه

د پښتون د اقبال ستوری به ځلیږي
چې ژوندی پکې پښتو پښتونولي شوه

## د قلم توره

پتمن ژوند ګوره فولاد په توره نه شي
قلم واخله د قلم په توره ښه شي

د فولاد توره که هر څومره تېره شي
یا به وژني یا به مري نو دا به څه شي

په زور کلي کله کېږي دا متل دی
اخر ناچار د سولې په لار تله شي

د بخت ستوری ئې تیاره نه وي نو څه وي؟

چې د چا د ورور عزيز سره پتنه شي

## پېژند

پېژند د هر شی په توپير او پرتلو[1] کې ګوري
د ازادۍ اواز شرنګا د زلونو کې ګوري

قامی شاعر د ميخانې دروازه نه ټکوي
نشه د ميو يئ د خپل وطن اوبو کې ګوري

دود دې ورپاتې د ساقی او ميخانې ادب کې
ځکه ئې ياد د شعر فن په سلسلو کې ګوري

د تورو زلفو په خيالونو شاعر مه ګرموۍ[2]
تمه د حورو هم د شيخ اوږدو سجدو کې ګوري

زه ورتــه نـيـمه شـپـه د ستورو پــه رڼـا کــې ورځــم
تــنـــګ او تــکــور چـیــرې د بـــرو د پښتنو کې ګوری

١ ) پرتله: مقایسه
٢ ) ګرموی : ملامتوی ، پړ کوی

## د نفاق رنځ

اوس کـه خـپـل جـنـت وطـن کـې بـې وطن یــم
خــو اخــر ددې وطــن اصـلــی څـښـتــن یــم

د نـــفــــاق رنـــځ راکـــې ګـــډ دی نـــاتـــوان یـم
کـــه یـــو ځـــل پـــه اتـــفــاق شـــم تـــوانـمـن یـم

د نـــفــاق درنـــځ لـــه درده کـــه زه روغ شــم
بـیـا مـــې ګــوره چـــې د خـــپـل وطن واکـمـن یـم

د غـــاټـــول د ګـل پـه بــوی کــې یم لـــوی شـــوی
پـروت ددنـګـو دنـګــو غـرونـو پـه لـمـن یـم

ســاه مــې واخـلـه خـو پـښتـو رانـه وانـه خـلـی

زه پښتون یم په پښتو باندې پتمن یم

که زما ستوری په قبر چیرې راشي
په پښتو راته دوعا کړه پری مین یم

## د مینې دود

بینا سترګې به څه کړم چې لیدل نه دي روا
دامه وایه چې ښکلو ته کتل نه دي روا

چې سترګې خدای راکړې نو د یار مخ ته به ګورم
د مستو سترګو جنګ کې په شا تلل نه دي روا

منکر چې په کتو وي دا پخپله لوی ګناه ده
رښتیني مسلمان ته دروغ ویل نه دي روا

چې مینه پښتنه شي ننګ پښتو ورسره مل شي
پښتون ته له پښتو نه، تېربدل نه روا

د ښکلې پښتونخوا نه ستوری سترګې بل خوا نه کړي
مین ته دود د مینې ماتول نه دي روا

# قضاوت

قضاوت خلکه د ګټو دی بازار
یو ته ښکاري سپېره ډاک بل ته ګلزار

یو ځای ښه بل ځاي د بد په نوم یادیږي
ښه او بد دي د انسان د وجدان کار

تو پیر هم شته د ټولنو په وجدان کې
یو کې وي سړی شاهکار بل کې غدار

حیقیقت هم نسبتی[۱] دي ستوری وائي
بېل بېل دي د هر انسان ذهني معیار

۱ ) ( Relative ) د فلسفي لفظ يا استلا ( اصطلاح ) او قطعي ( Absolute ) ضد دی

## ډېره

خوشبويي چې دي د زلفو راخوره شوه
د ګلونو خوشبويي صدقه شوه

بلبلان به زياتي څه کوي په باغ کې
بس دا ستا څنګو اوربل کې ئې ډېره شوه

پتنګانو سر ته هم دي الله خير کړي
چې ډېوه د ښکلي مخ دي ورښکاره شوه

تا چې رنګ د پښتونوالي عشق ته ورکړ
پښتنه مينه مې لا پسې توده شوه

چې دي ستوری د ټکري په سر ځليږي
نو په زړه د رقيبانو باندي شپه شوه

## عشق

دوام د انسانیت دی عشق انسان ته دي روا
په سپینو لبچو خوب پکې جانان ته دی روا

روا او ناروا څه دي دا حکم د وجدان[1] دی
انسان ته دي روا چې څه وجدان ته دي روا

وجدان خو د مین پابندي نه لګی په عشق
بس دا وايي چې عشق خو ټول جهان ته دی روا

په عشق کې د وطن که دي قامي وحدت ارمان وي
نو څه مه ایساریږه کار ارمان ته دی روا

نظر د قامولۍ ته ستوری ځواک د عمل ورکه
د قام د مینې حس خو زور او ځوان ته دی روا

۱ ) وجدان یا اخلاقي زه په انسان کې یو قوت دی چې په ښو ،بدو ،روا او ناروا قضاوت کوي او ښاري ئې

## د قسمت ویش

زاهــده مـا عــشـق په دنـیـا تـا پـه عـقـبـا اخـیستی
نـصیب دې خـپـل دی ما په لاس او تا نیسیا اختی

تـه حـورې سـتا یـه، زه بـه سـتا یـم د وطـن سـردرې
د قسـمـت ویـش کـی خو ما عشق د پښتونخوا اخستی

هــره دره کــی ښــکـلا ګـانــو غــزونـې کـــړی
ښـکلا پـرسـت یـم حـفـاظـت مـی د ښـکلا اخسـتی

چې د قامی وحدت غوټی[۱] مې په چمن کی ګـل شی
د بـاچـا خـان پــه پـل قــدم مــې بر مـلا اخـسـتـی

د شـپـې چې سـتـوری پښتونخوا د سردرو پیره کړی
د مـیـنــی زور دی د وطــن غـم او ســودا اخـسـتـی

## ګلشن

پاکه ربه جوړ زمونږ که وطن
پښتانه په خپل وطن کې کړه واکمن

چې د شپې پښتون بلبل پکې چغېږي
راکه ستورو د اسمان لاندې ګلشن

## د عشق اور

بورا څه کول په بوټي کې د ګل
چې د عشق په اور ستي نه وي ګوګل

چې ئي حس د قام د مينې زړه کې نه وای
د پښتون سره به نه وای ستوری مل

## د منطق اصول

که څوک راوړي چا ته یار د مرګ خبر
زړه غمجن شي په ژړا باندې شي سر

په کوتک باندې وهلی دې چا نه دی
دا خوتش د خولې خبرې دي اثر

په روزنه کې کوتک ځینې کار مه اخله
د منطق اصول ډېر زیات دې معتبر

که غزا کړې د قلم توره را واخله
ستوری دا د غزا شکل دی بهتر

## فن د مینې

فن د مینې د ژوند راز دی پوهېدل دي
جام د مېو د ساقي په خاطر څښل دي

ځواک د مینی مختلف رنګونه نیسي
ټولنیز رنګ ئې له یار سر ځارول دي

ګرانښت هم د مینې رنګ دې بل څه ندي
د ښکلا او ښایستونو پت پالل دي

انرژي د کار اصلي رنګ دې د مینې
د جانان په لور ګامونه اخستل دي

تولیدي خوي لري مینه ستوری وائي
مینه ځیرنده د ژوند ده ، ژوند ساتل دي

## د ځواک چینه

ورکړه وخت د کار د پاره، چې بری او پرمختـیا ده
ورکړه وخت د سوچ د پاره، چې د ځواک چینه اشنا ده

ورکړه وخت لوبو د پاره، پکې پروت د ځوانۍ رازدی
ورکړه وخت د لوست د پاره، چې د پوهې دا بینا ده

ورکړه وخت مهربانۍ ته، دا خوپیل د خوشحالۍ دی
ورکړه وخت خوښۍ د پاره، خوشحالي د روح غذا ده

ورکړه وخت د خیال د پاره، چې د هسک ستورو ته لار ده
ورکړه وخت مینې د پاره، چې د ژوند خوښي رښتیا ده

## پیدا ایښتی حق

ازادي نه پرته ژوند خو بې مانا دې
ازادي پیدا ایښتي حق د هر چا دې

څوک غلام د موره ندی پیدا شوی
ستوري وایي چې انسان ازاد پیدا دې

## ژبه

د هر قام پیژند په ژبه او کلتور کېږي
په برکت د ژبې قام هسک شی جګېږي

چې په خپله پښتو ژبه نه پوهېږي
ستوری څه پرې که په سل ژبو ګړېږي

## بدی

دا خپل چې څوک خپل نکړی پردی کله خپلوی شی
انسان چې شی بد بخته خپل کلتور[1] ځنی پردی شی

بس خپل پیژند ئي[2] ورک شی د بل نشی اخستی
په داسی رنځ اخته شی چې نه مری نه رغېدی شی

د قام نه پکاربږی چې په خپله ژبه ګونګ وی
که زر ژبې ئی زده وی په زر ژبو ګړیدی شی

په داسی لیکوالانو او پوهانو ستوری څه
خدمت چې د پردۍ ژبی کړی خپلی ته بدې شی

---

۱) کلچر، رواج
۲) تشخص

## د سولي جنډه

سر نه تېرېږي پښتو نخوا نه تېرېدلی نه شي
زړه مې پښتون دی بې پښتو ژوندون کولی نه شي

یا به واک خپل کړي د وطن یا به ترې ځان ځار کړي
په خپل وطن کې اقتدار پردی زغملی نه شي

جنډه د سولې جګوي د باچا خان بچي دي
ورورولي غواړي غلامي د چا منلی نه شي

د ستوري زړه کې اتفاق د پښتنو ارمان دي
بې اتفاقه قام منزل ته رسېدلي نه شي

## خیال

چې خیال مې و څېړلو راښکاره ئې شوه مانا
بېلګه ده د جنت خدای پیدا کړی په دنیا

څـــه چـې پـه جـنــت کې چا ســتـائــيـلــي دي
خـــيـال کـــې مـــې هـمـاغــه څـه لـــيـدلـي دي
هـــيــلـــې د زړه ســــــر تــــه رســــېـدلـي دي

خـيـال کـې کـــه څـه غـواړې در ســېـږي خـامـخـا
بېـلـګـه دہ د جـنـت خـداى پـيدا کړى په دنيا

خـــيـال کـــې د جـانـان کــور تـــه ورتــلـــى شـــى
خـــــيـال کـې جـانــان کـور تـه راوسـتــلـى شـي
خيـال کـــې جـانـــان غــېــږ کـې لـوبــولـــى شـي

خيـال کې پابـنـدي نه شتـه پــه مـيـنـه د هــيــچـا
بېـلـګـه دہ د جـنـت خـداى پـيدا کړى په دنيا

خــــيـال کـې د (وخــت څــاى) تــا ثـيـر کـمــېــږي
خـيـال کـــې وخـــت پـــه څـټ او مــخـتـه کـېـږي
خـــيـــال کــــې هــــــر چــېــرې ســـړى رســـېـږي

خـــــيـال کــې ازادي ده دا د ســـتـوری ده ويـــــنـا
بېـلـګـه دہ د جـنـت خـداى پـيدا کړى په دنيا

## هسې خواري

هـســـې خــــواري کـــړي زده کـــولـــى نـــشـي
کـــارغـــــه د زرکــې پـــه شــان تـلــلـــى نـشي

ځـان بـــه تــبـاه کـــړي کـــه تـــرې لانـدې وتـــو

مـــېـــږې د اوبن هـــومـــره بـــار وړلـــی نـــشـي

تـــش پـــه وزرو الـــوتـــل خـــونـــه دي
د چـــرګ وزر شـــتـــه الـــوتـــلـــې نـــشـــي

ســتــوری پــښــتــون بــه ئــی ځــوک ځنګ وګڼي
ځـــوک چـــې پــښــتــون ځـانـــتـــه ويـلـی نـشـي

## نغاري

پــيروني پريـوتلي[1]
نور به رڼا وي مالـت

تــلــې راوخــتــلــې
تــر وږمـى ووتلـې

ريـباره وايـه ورتـــه
د جانان غـېږې ته ځه

رقـيب دي وبـايـللې
جـانـان دي وګـتـلـې

قامی وحدت جوړېږي نغاري ووهلې
د سبا ستوری خېژي غمازه کيوتلې

---

۱ ) پیر وني او تلي : پیروني یو ډول جګ ( ګڼ ) ستوری دي تلي هم ستوري دي. په پخوا وختونو کې چې ساعتونه نه وو ستوري په کليوالو سيمو ( منطقو ) کې د وخت د معلومولو وسيله وه، په تېره بيا د روژې په مياشت کې پیروني پريوتلي ، تلی راوختلی د چړ بانګ يا پيشنمي د وخت ناره وه چې د پشنمي په مهال کې به پیرونی ستوري پريوتلې اوتلی ستوري به راختل.

## يو تېر

يو ورځې چا ويلي
چې اسمان ته مې کتلي

يوه غټه وريځه راغله
دوه وړي ئې بنکلولي

وړې شوې غټې کې غيبې
بيا مې سترګو نه ليدلي

ښکارې دا وي کوچنۍ وریځې
چې د مور غېږې ته تللي

د یو کور د یو ټبر وي
د یو بل نه ځارېدلي

چې هم جنس وی جمع کېږی
عقل کله بېلولي

په ویشلي پښتون قام ئې
ستوري اوښکې تویولي

## د تندي خالونه

په تورو څڼو ئې پراته و پردیسي ګردونه
په خوله ئې هېڅ نه ویل سترګو ئې ویل حالونه

د تورور سترګو اشارو کې راته وویل غلې
چې په پردي مالت کې نه کرمه زه ګلونه

که د وطن د ازادۍ شمال په ما ولګېد
په کچماچو [1] به بیا تازه کړم د تندي خالونه

ستورو رڼا کې د بلۍ د کشمالو وږمو کې

د میمونـــې او درخـــانـــۍ بــه درته کړم نکلونـه

---

۱) یو ډول بوټي دی چې د پوستکي په سر ئې په ستنه چقوي او شنه خالونه پرې ږدي

## د میني اور

رنګ د شونډو دی ټیکری اخستی پور[1] دی
کـــه دا ســـور رنـــګ د تـــودې میـــنـــې د اور دی

سور ټیـکـــری دې د سرو شونډو سره لــګـــي
چـــې د پـاســـه دې پـــه تـــورو زلـــفو خـــور دی

شیـن پـــرتـــوګ دې تـور کـمـیـس سره مـــزه کـا
چـې جـوړ کـړې پـرې پـــترو د ژونـدون شـور دی

حـــاجـــت نـــه لـري د خـال د ابـښـودلـــــو
چې ســـور ټـیـک دې د تـنـدي د پـاســـه ســور دی

ښــایــســـتــونــه پــه ســجــده درتــه پــراتــه دي
چــې دي خـــوی کـــې د پـــښـــتـــو د ښـایـست زور دي

ستــا پــه حــسـن او ښــکــلا د ســتــوری نــنـګ دی
بــې نـــنـــګـي پـښـتـــنـه مـیـنـه کـې پـــیــغــور دی

۱ ) قرض

## د شعر فلسفې

کــه څــوک څـیــړنـه کــړي د شــعـر فـلـسـفې لټوي
خـیـال او ښـکـلا ، مـیـنـې ، احـساس تـه بـه نـغـمـې لټوي

خـیـال پـه بـاغـي دنـیـا کـې اوسـي پـابـنـدي نـه مـني
عـبـث خـــواري کـــوي چـې خـیـال تـه زلـــونـې لټـــوي

موسیقي وال لـفـظـي انځور د خیال ته شعر وائي
فـــن او هـــنــر ورتــه د بـــم او زیـــر پـــردې لـــټـــوي

ســتــوری پـښـتـو پښتونـولـي د ساز نغمو کې نغاړي
د رباب ټـنـګ پـسې د ټـول مـالـت حـجـرې لـټـوي

## غیرت

خدای مین د غیرتمنو په غیرت دی
هر یو کار د غیرتمنو عبادت دی

په وطن او په خپل قام چې غیرت کاندی
ستوری وائی چې په برخه ئی جنت دی

## خوب

خوب مې لیده چې پښتونخوا جوړېږي
چې ویښ شوم غرېشو په رښتیا جوړېږي

د افضل خان په نارا ننګه وشوه
ملی دېره د خان لالا جوړېږي

چې قرارداد د پښتونخوا ئی پاس کړ
نسیم ولي د قام انا جوړېږي

ارمان د ستوري غوټۍ وسپړلي
چې ئی غوښته هغه دنیا جوړېږي

## د پیژند کړ کیچ

چې لالی مې د سرکار شولو نوکر
د کابل دربار پرې وکړلو اثر

پښتو ئی هېره کړه اوس داسې ژبه وائی
چې تو پیر پکې نشته د ښځې نر

په دماغ کې د پیژند کړکیچ پیدا دی
دښمن شوی د خپل قام او خپل ټبر

ستوری وائی انتها ئی د ځان مرګ دی
تبا کېږی خو له ځان نه دی خبر

## هګۍ

که نظر دي په ژوندیو د دنیا شي
نو ژوندون د کوچني تخم نه بینا شي

د هر هګۍ تخم کې وي څو توانونه
په خپل وخت کې راښکاره او برملا شي

توانونو په بنسټ هډونه بیل شي
د ژوندون د چارو وېش هم منځ ته راشي

یو مثال د دي خبرې به کړم وړاندې
چې مې پوه ښه په مقصد او مدعا شي

د هیلۍ هګۍ که چرګې ته څوک کېږدي
ګلالۍ ښایسته بچې ترې راپیدا شي

چې لږ لوی شي چرګه پرېږدي تري روان شي
د اوبو په ډنډ ورګډ شي په لمبا شي

چرګې هډ ګې چې توان د لمبا نه شته

ډنډ پـه غـاړه وقـړ تـيـرېږي پـه غـوغـا شـي

چې يـو هـډوی دا قـانـون دی يـو ځـای کېږی
چې ئـی هـډ سـره شريـک نـه وی جـدا شـي

سـتـوری وائـی چې پـښتـون لـه يـوه هـډ دی
د قـامـی وحـدت ګـلان بـه خـامـخـا شـي

## څه شولو ؟

څوک بت پرست، څوک زر پرست شو خدای پرست څه شولو ؟
ځان پرستـان دلـې دلـې دي قام پرست څه شولو ؟

درنـو حـجـرونـه چې د ټـنـګ ټـکور اواز، نه راځی
هنر مـنـدان او شـاعـران ادب پـرسـت څـه شولو ؟

تـورو کـارغـانـو چې د بـاغ ګـلان تـالا والا کړل
ښکلی باغونه ئی چې ساتل، ښکلا پرست څه شولو ؟

چې د وطـن لـه ګـټو ، ګـټې د خپل ځان کړی قربان
سـتـوری ئـی هر ځای لـټوی وطن پـرسـت څـه شولو ؟

# خوښنه او مننه

ګڼ شمیر ادب پالونکو ملګرو په راډیو، جریدو او ورځ پاڼو کې ځما د شعرونو په هکله په خپرونو او لیکنو زه دي ته و هڅولم چې د ژبساپوهنې د نامه لاندې د پوهنیز کتاب د مخه چې زه ئې په لیکلو بوخت یم د شعرونو یو بل کتاب « د قلم توره » د ادب مینه والوته وړاندې کړم. پدې لړ کې زه د پښتو نامتو لیکوال او شاعر د پښتونخوا د پوهنې د دیرې د مشر د پېښور راډیو سینر پروډیوسر ښاغلی لالق ذاده لایق، د پېښور پوهنتون د اسلامیه کالج استاد او راډیو او تلویزیون د نومیالی ویاند ښاغلی اباسین یوسفزي، د پښتو پیاوړي لیکوال ښاغلي سر محقیق زلمی هیوادمل، د وحدت دورځپاڼې چلوونکی ښاغلي سید رحمدل شاه او ښاغلی پریشان داودزی، د دعوت د خپرونی موسئس او موسئول چلوونکی ښاغلی محمد طارق بزګر، د المان غږ راډیو د افغانستان د څانګی پیاوړی ملګری ډوکتور سید موسی صمیمی او پتمن لیکوال ښاغلی جمشید ندیم نیازی نه د زړه له کومی خوښنه کوم. د هنر مرګ د قام مرګ دې ژوندي قامونه خپل هنر ژوندی ساتي. دا د ټولو قام پرستو دنده او زمه واری ده چې د پښتو د هنر د ژوندی ساتلو د پاره کار وکړی. د هنر د

بڼ د بلبلانو څخه چې خپله د کلونو باغبانی د سختو شرایطو د لاندی کوي او د پښتو د هنر بڼ ئې تازه ساتلی، په تیره بیا د هغه هنرمندانو څخه چې ځما شعرونه خوښ کړیدی. او په راډیو « کلتوری پروګرامونو » کې پخپلو خوږو اوازونو او ښکلې موسیقۍ کې وړاندې کړی دی د زړه د کومی خوښنه کوم. پدې نښتون کې د لاندې هنرمندانو د نومونو یادونه ضرور ګڼم.

ښاغلی استاد رحیم غمزده: د پښتونخوا نامتو هنرمند او شاعر چې پښتو موسیقی ئې په نوی رنګونو، تالونو او په هندی سبک سره غنی کړې ده ډېره ډېره خوښنه.

ښاغلی رضوان منور او ښاغلی شاه ځوان منور چې ځوان استعداد لرونکی روزل شوی ( تعلیم یافته ) هنرمندان دی چې د خپل پلار د پښتونخوا د مشهور هنرمند خدای (ج) بښلی استاد بادام منور په شان د حجرې د مجلس اتلان دي چې د پښتنو حجرې او دیرې په ټنګ ټکور ګرمې ساتی، ( رضوان منور ځما د شعرونو لمړنی د موسیقۍ ترون کړیدې ) ډیره ډیره مننه. ښاغلی استاد یار محمد چې نامتو هنرمند دی او د پښتو موسیقۍ د نوښت ګرو، په ډله کې شمیرل کیږې او پدې توګه د پښتو موسیقۍ ته وده ورکوي،( په تیره بیا د غزلونو امیل د داستان په بڼه کې ئې په زړه پوری نوښت دې ) ډیره ډیره مننه. همدارازد پښتونخوا د نامتو او خوږ ژبو هنرمندانو هر یو ښاغلی استاد هدایت الله، د ارموني شاهکار ښاغلی استاد شاولی، ښاغلی انور خیال، ښاغلی زلمی غمزده، ښاغلی استاد نواب، ښاغلی بریالی صمدی، ماشومه نازیه اقبال او ماشوم عزیزالرحمن، ښاغلی نورالرحمان، ښاغلی

عبدالحمید قندهاری، ښاغلی ګل جان صادق څخه چې اوازونه ئې په زړونو کې لاري جوړوي ډیره ډیره خوښنه.
د ښاغلی ننګیالی، ښاغلی فضل ربی پردیسی، ښاغلی نذیر ګل او ښاغلی استاد صنم څخه چې رباب ئې د ادم خان افسانوی یاد تازه کوی چې ځما د شعرونو د موسیقۍ ښکلی تړون ئې کړیدې ډیره مننه او هم د هغه هنر مندانو او فنکارانو څخه چې زه تری خبر نه یم چې زما شعرونه ئې ویلی دي او یا مي د قلم څڅه پاتی شوي دی.
ډیره خوښنه او همدرانګه ددي کتاب (قلم توره) د موسیقۍ د اولسي کلتوري ماښامي د موسیقۍ طرز جوړونکي او پیاوړي سندرغاړي ښاغلي ماسټر علی حیدر چې زما شعرونو ته ئې نوي او په زړه پوري موسیقي جوړه کړی او هم ئې په خپل ښکلي اواز د ماښامي رنګ لا ښکلي کړې دې ډیره ډیره مننه او خوښنه او هم د ځوان هنرمند ښاغلی سیدا ګل مینا چې د پښتو موسیقۍ د نامتو هنرمند مینا ګل زوي او د ښکلي اواز څښتن دې ډیره مننه کوم.
د پښتو د قامی ادبی جرګې د منلو ملګرو ښاغلی حاجی محمد نادر سرشار، ښاغلی صلاالدین قاضي خیل، ښاغلي نصیر ستوری، ښاغلی عزیز سرشار او د پښتنتو د کلتوری ټولنی د مشر ښاغلی محمد شیرین ګردیوال څخه چې ددي کتاب ( د قلم توره ) د شعرونو لیک دود ئې کتلی دې او په تیره بیا د ایمل خان ستوری څخه چې دا شعرونه ئې د ښوونځي د سبقونو سره سره په ډیره مینه او خوشحالۍ په خپل کمپوټر لیکلي دی ډیره زیاته خوښنه.

همدغه شان د عبدالبصیر بیدار، نسیم خان ستوری، امیر کروړ ستوری او ننګیالی میرداخیل څخه چې د کتاب د چارو په سمبالښت کې ئې زیار ایستلی دی ډیره مننه.

په درناوی

ډاکتر کبیر ستوری

جرمني

۱ / فبروری /۱۹۹۹



کبیر ستوري د ساینس پوهنو ډکتور Dr)
(Diplom ساپوه rer. Nat.دیپلوم
(Psychologyپه هڅ پښتون په تېر میرداد خېل
چې د پښتنو د یوسفزو د پرکنې پورې اړه لري.
ستوري د لعل محمد خان زوی او د برې پښتونخوا
د کونړ د تنړ په کلي کې په ۱۷/۱/۱۳۲۱ هل کال
(۰۶/۰۴/۱۹۴۲ ع) زېږېدلی دی.

ده ځپله لومړنۍ زده کړه د خاص کونړ په لومړني ښوونځي او په کابل کې د رحمان بابا په لیسه کې او ځپله لوړه زده کړه د جرمني د فرانکفورت، کولن او د ماربورک په پوهنتونونو کې د ساپوهنې (Psychology)په څانګه کې، چې فلسفه (Philosophy) سیاسي پوهنه (Pol.Science)او ټولنپوهنه (Socialogy) ورسره مل وه، سرته رسولې ده.

ستوري د نړۍ د ساپوهانو په ډله کې ولاړ دی او د ۱۹۷۵ ع کال راهیسې د کړنې د ساپوهنې د نړیوالې ټولنې (International Association of Applied Psychology)غړی دی. ستوري د پښتون سوشل دیموکراتیک پارټۍ (PSDP) مشر او د دې پارټۍ د بنسټ ایښودونکو مخکښانو څخه دی.

او د شاعرۍ په نړۍ کې تر ټولو زیات د پښتو د ادب د پلار اجمل خټک نه یې الهام اخیستلی دی، د پښتنو د یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ دپاره ده ته د باچا خان نظریو ژوند وربښلی دی.